# شریعت

ورځپاڼه

د افغانستان اسلامي امارت مرکزي نشراتي ارګان

د تأسیس کال ۱۳۷٤ هـ.ش/ دوهم پړاو / ۷۰۳ ګڼه / دوشنبه ۱۰ رمضان‌المبارک ۱٤٤٦ هـ.ق / د کب ۲۰مه ۱٤۰۳ هـ.ش / ۱۰ مارچ ۲۰۲۵ میلادي


اوقات افطار و سحر به افق کابل

افطار : ۶:۰۲ سحر: ۴:۴۰

## د بهرنیو چارو وزیر عمان ته تللی

د بهرنیو چارو وزارت سرپرست مولوي امیرخان متقي د عمان سلطنت د بهرنیو چارو وزیر بدر بن حمد البوسعیدي په بلنه یاد هېواد ته تللی دی.د افغانستان د بهرنیو چارو وزارت مرستیال ویاند حافظ ضیاء احمد تکل وايي، تاکل شوې چې د دې سفر په لړ کې به د یاد هېواد له چارواکو سره د لیدنو سربېره د دواړو هېوادونو پر سیاسي او اقتصادي اړیکو هم خبرې وشي.یاده دې وي چې د اسلامي امارت له بیا واکمنېدو وروسته، عمان له افغانستان سره د اړیکو د پراخولو لپاره نرمه پالیسۍ خپله کړې او د افغانستان په سیاسي، اقتصادي او بشري وضعیت یې نظر ساتلی دی.

# گاونډیو هېوادو ته وړل شوي پوځي تجهیزات د افغانانو حق دی



د افغانستان پخواني نظامي چارواکي، افسران او عام خلک ازبیکستان او تاجیکستان ته وړل شوي پوځي تجهیزات د افغانانو ملکیت بولي او له دغو هېوادونو غواړي چې بېرته یې ور وسپاري. دا تجهیزات، چې جنګي الوتکې، وسلې او نور مهمات په کې شامل دي، د پخواني حکومت د پرځېدو پر مهال دغه هېوادونو ته لېږل شوي وو. څو ورځې وړاندې د امریکا پخواني ولسمشر ډونالډ ټرمپ ادعا وکړه چې دا تجهیزات د امریکا دي او له اسلامي امارته یې وغوښتل چې باید دوی ته وسپارل شي؛ خو د پخواني نظام یو شمېر پوځي چارواکو د ټرمپ دغې غوښتنې ته توند غبرګون وښود او ویې ویل، چې دا وسلې د افغانستان ملي شتمني ده.

د پخواني پوځ جنرال شعور ګل پښتون د یوې غونډې پر مهال وویل چې دا تجهیزات د افغانانو مسلم حق دی، او ګاونډي هېوادونه دې دغه تجهیزات بېرته د افغانستان حاکم نظام ته وسپاري. هغه وویل: «امریکا زموږ د پخوانیو نظامونو وسلې د ډي ډي آر او ډاياک پروګرامونو له لارې له منځه یوړې **۳مخ**

## نشست بزرگ ولسوالان و شاروالی مزارشریف برگزار شد

به ابتکار ملا محمد یوسف وفا، والی بلخ نشست بزرگ ولسوالان، قوماندانان امنیه و مسئولان شهر مزارشریف از جمله شاروالی این شهر برگزار شد.بربنیاد خبرنامه، هدف از برگزاری این نشست افزایش سطح همکاری‌ها و هماهنگی میان ادارات محلی ولایت بلخ از جمله ولسوالی‌های این ولایت با مسئولان شهر مزارشریف است.ملا محمد یوسف وفا، والی بلخ در این جلسه با اشاره به مسئولیت‌های حکومت گفته که نخستین مسئولیت تامین امنیت سرتاسری بوده و تاکید کرده که در این راستا باید تلاش‌های شبانه‌روزی نیاز است.والی بلخ خواستار جلوگیری از فروش، قاچاق **ص۳**



## کندهار کې یو کوچنی بند ګټې اخیستو ته سپارل شوی



د کندهار د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ ریاست وایي، چې د نېش ولسوالۍ په «کنده» سیمه کې د ۲.۶ میلیونه افغانیو په لګښت د اوبو یو کوچنی بند ګټې اخیستو ته وسپارل شو. د مسئولینو په خبره دغه بند ۲۰۰ متره اوږدوالی، ۲ متره سور او تر۶ متره زیات لوړوالی لري، چې د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ وزارت له بودجې څخه د پنځو میاشتو په موده کې جوړ شوی دی.

## له تاشکند سره د وسپنې پټلۍ د پراختیا په تړاو بحثونه شوي





د ټولګټو چارو وزارت وایي، تېره اوونۍ د یاد وزارت تخنیکي پلاوي ازبیکستان ته د حیرتان بندر اړوند د ریلي همکاریو د پراختیا په موخه سفر وکړ. سرچینه زیاتوي، چې دې تخنیکي پلاوي د ازبیکستان هېواد د وسپنې پټلۍ اداري سره روښانه او بریالي مذاکرات ترسره کړل، چې د دوه اړخیزو همکاریو په پایله کې د حیرتان وسپنیزې کرښې د ګټې اخیستو قرارداد په غځولو هوکړه وشوه.

## سرمقاله

## د مېرمنو حقیقي حیثیت

د مارچ اتمه د نړۍ په ګڼو هېوادونو کې د مېرمنو د ورځې په توګه نمانځل کیږي. ددې ورځې د نمانځنې مخینه شاوخوا سلو کلنو ته رسیږي، چې موخه یې د ښځو د لاسته راوړنو او په ټولنیزو، سیاسي او اقتصادي فعالیتونو کې پراخه ونډه اخیستنه ده. خو اصلي بحث دا دی چې ایا رښتیا هم په نوره په ځانګړې ډول په لوېدیځه او کفري نړۍ کې د مېرمنو حقونه پرځای دي؟ ایا دوی ددې حق لري چې مور، ته د ښځو د حقونو ناقضین ووایي؟ تاسو که په واقعي توګه له ښځو سره د نړۍ برخورد وګورئ او په خاصه توګه په منځنیو پېړیو کې د اروپایانو چلند له ښځو سره مقایسه کړئ، نو غوني به مو ځیږه کړي. په منځنیو پېړیو کې فرانسه کې پر دې لویه ناسته راغوښتل شوې وه چې ایا ښځې هم انساناني دي او که نه؟ بیا له ډېر جدل وبحث وروسته دې پایلې ته رسېدلي وو چې ښځې انساناني دي خو یوازې د سړیو چوپړ ته بیدا شوي. بل بحث به دا کېده چې ایا ښځې هم روح لري او که نه. له بحث او جنجال وروسته یې منله چې روح لري، خو حیواني روح.

اروپا کې د ښځو پېروپلور عادي خبره وه او د سوداګرۍ د یوه ابزار په توګه ترې ګټه اخیستل کېده. دوی د (خول‌بند) په نوم یوه فلزي اله جوړه کړې وه چې ترڅو د ښځو خولې پرې وتړي. دا اوس هم د امریکا په ګډون هر هغه هېواد کې د ښځو وضعیت ووینئ، نو دا به واضح شي چې یوه ګوته ما ته او اصلا څلور ځان ته نیسي. ایا امریکا او ټوله اروپا کې د ښځو هغه حقونه چې د دوی حقونو وضع کړي، ورکړي؟ ایا له نرانو سره یې معاش او د ژوند کچه یوشان ده؟ په حکومتي لوړو بستونو کې یې شمېر څومره دی؟ تېرو شلو کلونو له ښځو د ابزار په توګه ګټه نه اخیستل کېده. کومې بوږنوونکې پېښې رامنځته شوې. پښتني او افغاني غیرت د یادو پېښو د تکرار او اورېدو توان لري؟

د اسلامي امارت ویاند ذبیح الله مجاهد هم ورمه ورځ په خپل ایکس لیکلي و چې مېرمنې زمونږ میندې، خوېندې، لورګانې او د ژوند شریکانې دي. ښاغلي مجاهد په خپله ایکس پاڼه لیکلي و، افغان مېرمنو ته هغه حقوق چې اسلام ورکړي؛ اسلامي امارت یې په ورکړه او ساتنه کې ځان مکلف بولي. د اسلامي امارت ویاند اړوند ارګانونه مکلفه ګڼلي، چې د ښځو د حقوقو په ساتنه کې خپله برخه ورکړي او له ټولو حقه حقوق یې ساتنه او څارنه وکړي. ښاغلي مجاهد وړاندې لیکلي و چې د ښځو بحث د اسلام او غرب له لیدلوري توپیر لري. اصلا بحث دا دی چې په نوره نړۍ کې د ښځې د فطرت پر خلاف قوانین رامنځته شوي. هلته د (نه‌مور کېدل) موډ دی او کورنی انسجام نشته. لیکن اسلام کې بحث د کورنۍ د تشکیل دی او مور د خپل اولاد پر روزنه او د حقونو پر ورکړې مکلفه ده. هلته اصلا له ښځو اصلي مکلیفت اخیستل شوی. اسلامي امارت د ښځو د اسلامي حقونو د ورکړې تلاش کړی او لا یې هم کوي. هره ورځ ښځو ته د میراث د ورکړې، له کورني زندانه د خلاصون، د جبر د نکاحګانو د فسخې او بدو کې د نجونو د مخنیوي خبرونه وینو. همدارنګه په تشبثي او سوداګریزو **۳مخ**

## پکتیکا کې د ۳۰۰ اړمنو کورنیو لاسنیوی شوی



د افغاني سرې میاشتې د سوېل ختیځ سیمه ییز زون اړوند پکتیکا ولایت ډیله ولسوالۍ کې له (۳۰۰) اړمنو او بېوزله کورنیو سره د بېلابېلو خوراکي او ناخوراکي توکو مرسته کړې ده. د افغاني سرې میاشتې د سوېل ختیځ سیمه ییز زون مسئول ویلي چې دا مرستې پر هغو بېوزلو وېشل شوې چې پخوا یې سروې ترسره شوې وه.په یاده مرسته کې هرې کورنۍ ته ۵۰ کیلو اوړه،۲ یوه کڅوړه غذایي توکي،۳ یو کارټن د کالیو مینځلو پوډر، ۴ کارټنه کاغذي دسمال،۵ یوه بسته پمپر، پنځه کیلو بوره،۷ د پوښاک لباس او ۸ د لوښو وینځلو شامپو شاملې دي.یاده دې شي چې سرې میاشتې تر دې دمخه هم په بېلابېلو ولایتونو کې د بېوزلو لاسنیوی کړی دی.

## هرات کې خوګانو د زعفرانو کښتونه ویجاړ کړي

د هرات په زنده جان ولسوالۍ کې کروندګر وايي، خوګانو یې د زعفرانو سلګونه جریبه کښتونه ویجاړ کړي دي. د دوی په خبره، دغه خوګان د شپې لخوا د زعفرانو کښتونو ته ورځي او پراخ مالي زیانونه یې ور اړولي دي. د کروندګرو په خبره، وحشي خوګانو شاوخوا زر جریبه د زعفرانو کښتونو او نورو کرنیز محصولاتو ته په جدي ډول زیان رسولی دی. د هرات د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ ریاست مسئولین وايي، د خوګانو له یرغله به د زعفرانو کښتونو ساتنې په برخه کې اړین ګامونه پورته کړي.



## هلمند کې د قاچاقي توکو مخنیوی شوی



د ۲۱۵ عزم قول اردو د اووم نمبر سرحدي محمدي لواء مجاهدینو د هلمند د خانشین ولسوالۍ د خواجه علي سیمه کې له بېلا بېلو توکو بار دوه بېنس موټرونه نیولي دي.نیول شویو توکو کې ۵۳۵۲۰ کیلوګرامه مس، لس ټنه ټوکر ، ۵۰ بورۍ د کوکنارو تخم ، یوه پایه سټلایټ ټیلیفون او ګڼ نورو توکي چې ګاونډي هېواد ته قاچاقېدل نیولي دي.یاده دې شي چې هلمند کې تر پخوا هم ګڼ قاچاقي توکي نیول شوي وو.

## غور کې ټرافیکي پېښې ۴ تنو ته مرګ ژوبله اړولې



د غور د امنیې قوماندانۍ د رسنیو دفتر د یوې خبرپاڼې په خپرولو سره ویلي، فېروزکوه ښار کې د ټرافیکي پېښې له امله دوو کسانو ژوند بایللی او دوه نور ټپیان شوي. خبرپاڼه کې ویل شوي چې دغه پېښه تېره شپه بجې د فېروزکوه ښار «پوزلیچ» سیمه کې شوې ده. د پېښې د رامنځ ته کېدو څرنګوالي په اړه څه نه دي ویل شوي، خو لامل یې د موټر چلوونکي بې‌احتیاطي ښوول شوی.

# هدفمند ژوند

صابر جان محصل

انســان د الله تعالی په مخلوق کې تر نورو مخلوقاتو غوره بللی شوی او اللــه تعالی انعامات هم پری لورولي، نطق، عقل او علم هغه څه دي چې الله تعالی یوازې انســان ته ورکړي څرنگه چې د انســان دغه ۳ واړه صفات د الله تعالی په نعمتونو کې پر انسان ځانگړي انعامات دي همدغسې انسان د دغه ځانگړو انعاماتو په سبب تر نورو مخلوقاتو زیات مسؤلیت پرغاړه لري.څرنگه چې پر انسان د الله تعالی انعامات ځانگړي دي همدغســـې د انســان ژوند هم باید له نــورو حیواناتو ځانگړی وي، ټولنیز ژوند د رزق لټون او د اولاد پالنه او روزنه د انسان ځانگړتیاوي نه دي ځکه ځینې حیوانات هم ټولنیز ژوند لري، د الله تعالی پر ځمکه خپل رزق لټوي او د خپلو اولادونو کفالت او روزنه کوي مرغان خپلو اولادونو ته الوت ورښــيي او ځینې نور حیوانات اولادونو تــه له وحشي ژویو څخه د ســاتنې او نجات تکتیکونه او منډې ورښــيي. که ټولنیز ژوند دی، که د ځان او اولاد تغذیه ده او که د اولادونــو پالل دي دا په مخلوق کې د انســان ځانگړنه نه بلکې له نور مخلوق سره د انسان گډ مشترکات دي.هغه څه چې انسان له نور مخلــوق څخه بیلوي هغه هدفمند ژوند دی.الله تعالی چې انســان ته پــر نورو مخلوقاتو بهتري ورکړې هغه یې د انســان د هغو اعمالو په سبب ورکړې د کومو اعمالو او مقاصدو لپاره چې انسان خلق شوی. په قرآن کریم کې داسې ایاتونه هم شته چې هغو انسانانو ته د حیواناتو ناپوهانو جاهلانو خطاب شــوی کوم چې د الله جل جلاله د اوامرو نافرماني کوي، له پورتنیو وعدینو څخه معلومېږي چې کامل انســان هغه دی چې ژوند یې د یو خاص مقصد او هدف لپاره او تگلاره یې د الهي اصولو له مخې وي.

د انسان د ژوند هدف څه دی؟

الله تعالی په قرآن کریم کې فرمایي،

ژباړه : او ما نه دي پیدا کړي پیریان او انسانان مگر د عبادت لپاره .

دلته د انســان او د پیري د ژوند مقصد او هدف ظاهر شو چې انسان او پیــری د الله تعالی د عبادت لپاره پیدا شــوي کلــه چې الله تعالی د انســان او د جنیاتو لپاره د ژوند مقصد په نښه کوي همدغه وظیفه او عمل د انسان صفت بلل کېږي د همدې صفت په سبب انسان له نورو حیواناتو بېلېږي.

کله چې انســان او پیري ته هدف او د ژوند مقصد د رب العالمین ذات عبادت ټاکل کېږي نو لازمه ده چې لومړی د الله تعالی عبادت وپېژنو د اللــه تعالی عبادت څــه ته ویل کېږي ؟مفسرینــو دعبادت بېلا بېل تعریفونه کړي چې مقصد د ټولو یو دی عبادت د الله تعالی د معرفت په معنــی عبادت له الله تعالی څخه د خوف پــه معنی عبادت د الهي اوامرو پر ځای کول او له نواهي وو څخه د اجتناب په معنی او یا هم د اللــه تعالی د رضا د حاصلولو په معنی ابن قیم رحمه الله د عبادت د تفسیر په اړه فرمایي چې د الله جل جلاله د رضا لټون او له هغه څخه ویره او مغفرت غوښــتل عبادت بلل کېږي.د بخاري شریف حدیث دی چــې عملونه په نیتونو سره دي، یعنــې د اعمالو نتیجه یا عواقب د انســان په نیت پورې اړه لري که چېرې د خیر په کار کې د انســان هدف د الله تعالی رضا وي نو الله تعالی به خپله رضا ور نصیب کړي.

په پورتني صفت کې انســان او پیری دواړه شریکان دي اوس د انسان یو بل مسئولیت ذکر کوو چې د هغه مسئولیت په اساس انسان له جن څخه ځانگړی کېږي او هغه مسؤلیت دی د ځمکې خلافت، الله تعالی ځمکې ته ۱۲۴ زره زیات کم پیغمبران خپل استازي رالېږلي چې ټول یې انسانان دي او د یوه ایت په مفهوم کې الله تعالی انسان د ځمکې خلیفه یاد کړی دی په پیریانو کې هیڅ کوم نبي نه دی رالیږل شوی.

د خلافت په مسئولیت سره انسان ته یو بل مهم مسئولیت ور له غاړې کېږي چې دا مسؤلیت له پیریانو څخه هم انسان ځانگړی کوي.

هغه انســان چې د الله تعالی د بنده گی او د ځمکې د خلافت په څیر درانــه پیټي یې په سر وي بیا به څنگــه او ولې خپل قیمتي وخت او مهلت بې هدفه تیروي؟

هدف د ژوند هغه شاخیزونو یا مقاصدو ته ویل کېږي چې انسان یې د حصول په لټه کې وي.مؤمن مســلمان لره په کار ده چې د ځان لپاره لوړ اهداف وټاکي داسې اهداف چې د ځان اخروي او دنیوي گټې یې په کې نغښتې وي او دین هېواد او ملت ته یې خیر په کې رسېږي.نیت: اهدافو ته د رسیدو مقصد یې باید د الله تعالی رضا وي.که زده کړه ده، کــه د دین خدمت دی که د ملت خدمت که د حلال رزق گټل او که له نورې نړۍ سره په قدرت ، ثروت او پرمختگ کې ســیالي ده دا هر څــه تر نیتونو پورې اړه لري که چېرې نیت صادقانه د الله تعالی رضا وگرځول شي او د شریعت له اصولو سره ســم هدف ته د رسېدو لار تعقیب شي ښه هدف او لار بلل کېږي.د انساني ژوند بنسټ پر هدف ولاړ دی او هــدف لرل د بریا لپاره مهــم اصل دی. که ژوند بې هدفه وي، انسان نه یوازې خپل وخت ضایع کوي، بلکې د خپل استعداد او وړتیاوو څخه هم سمه گټه نه شي اخیستلای.

د هدفمند ژوند څو مهمې گټې په لاندیني ډول ذکر کوو.

۱- هدف انســان ته یو ټاکلی مســیر ورکوي، چې لــه بې‌لارېتوب، انحراف او له سرگردانۍ څخه یې ژغوري.

۲- هدف لرونکی انسان خپل وخت نه ضایع کوي، بلکې هر ساعت د خپلو موخو د ترلاسه کولو لپاره کاروي.

۳- کله چې انسان خپل هدفونه ترلاسه کړي، د ځان پر وړتیاوو باور پیدا کوي او لا ډېر پرمختگ ته هڅېږي.

۴- هدف لرونکی انسان د ناهیلۍ او بې‌معنی ژوند احساس نه کوي، بلکې د پرمختگ او لاسته راوړنو په لټه کې وي او په دې سره روحي سکون هم تر لاسه کوي.

۵- هدف انســان ته د تفکر او نوښت توان ورکوي او د ستونزو لپاره نوي حل لارې پیدا کړي.

هدف د انســان د پرمختگ اساسي لامل دی او هدفمند ژوند انسان ته خوشــحالي، ثبات او لاســته راوړني ورکوي. بې‌هدفه ژوند نه یوازې د فرد لپاره زیان لري، بلکې ټولنې ته هم تاوان رســوي، نو هر انسان باید د خپــل ژوند لپاره واضح هدف وټاکي، پــرې تمرکز وکړي او د لاسته راوړلو لپاره هڅه وکړي.»هدف لرل د بریا لومړنی شرط دی او بې‌هدفه ژوند د فرصتونو د ضایع کېدو سبب گرځي.

# بیعت او اطاعت

خالق یار احمدزی

مسلمانه ټولنه د بیعت او اطاعت په نامه دوې کلمې لري چې هم د ټولنیز ژوند رفاه پورې تړلې او هم د فردي ژوند ښېگڼې په کې نغښــتې دي.که په رښتوني توگه خلک د خپل رهبر او لارښــود سره کړي بیعــت ته ژمن او مطیع پاتې شي ،نه یواځې به یې دنیوي گټې په برخه وي بلکې له ابدي سعادت او نیکمرغیو به هم برخمن وي.

**موږ دلته په خلاصه توگه د دواړو تشریح کوو:**

بیعت په لغت کې د بیع او ژمنې کولو په معنی سره راځي ، پــه بیعت کې هم د خپــل ځان تبادله/بیــع ده، بیعت اخیســتونکي ته د ټاکلو اصولو ته پــه ژمنتیا سره؛یانې بیعت ورکوونکی لــه هغه چاسره چې بیعت ترې اخلي، د خپلې تســلیمۍ عهد او پیمان کوي، چې د ټولو اوامرو به یې اطاعت کوي.په ساده ټکو یې که ووایو بیعت له خلیفــه یا امیر سره د اطاعت او وفــادارۍ هغه تړون ته ویل کېږي چې له مخې یې یاد کس د شریعت له احکامو سره سم د ده د اطاعت کولو ژمنه ورکوي. مولانا خطابي صاحب د بیعت د اقسامو په تشریح کې وایي :

بیعت په ۴ ډوله ده؛

۱- د ایــمان بیعت: هغه بیعت چې له رســول الله سره به خلکو د اسلام راوړلو پر مهال کاوه چې نور به له شرک او کفر لاس اخلي او د اسلام قوانینو ته به سر ټیټوي، دا له ټولو لوړ او د سترې مرتبې بیعت دی.

۲- د خلافت یا ســمع او طاعت بیعــت: هغه بیعت چې صحابه کرامو به له رســول الله ص سره کاوه چې د هغه هر امر منلو ته به غاړه ږدي او ژمنه به یې ورکوله چې په سختۍ او اسانۍ کې به یې ترڅنگ وي.

۳-د ارشــاد بیعت: هغه بیعت چې صحابه کرامو رض به له رسول الله سره د گناهونو په ترک کاوه او اوسني دور کې یې هم مریدان له خپل مرشد سره کوي او مرشد یې پر دې ژمنه ترې اخلي چې له گناهونو به ځان ساتي.

الله ج فرمایي؛ ژباړه: بېشــکه هغه کسان چې له تا سره بیعت کوي په تحقیــق سره دوی له الله تعالی سره بیعت کوي.په دې آیت کې په صراحت سره ثابته شوې چې له رســول الله ﷺ سره بیعت شوی او دا بیعت په اصل کې لــه الله تعالی سره بیعت دی، نو ځکه خو هم د طریقت مشائخ چې له کوم چا سره بیعت کوي یوازې هغه بیعت تازه کوي کوم چې موږ په یوم المیعاد کې د دې ســوال« الست بربکم»په ځواب کې « بلیٰ» ویلي وو.

همدارنگه د بیعت اثبات په ډېرو احادیثو کې هم شــوی چې موږ به مشت نمونه خروار ذکر کړو.لومړی،ژباړه: رســول الله ﷺ فرمایي: له ما سره پــه دې بیعت وکړئ چې تاسو به له الله تعالی سره شریک نه نیسئ، غلا به نه کوئ، زنا به نه کوئ...

د حدیــث په آخر کې راغلي: ( فبایعناه ) یعنې موږ بیعت ور سره وکړو

بیعت الارشاد په خپله دوه ډوله دی

الف: جمعي بیعت

با: افرادي بیعت

جمعي بیعت په لاندې حدیث ثابت دی

یعنې: موږ له رســول الله ﷺ سره ناســت وو نو رسول الله ﷺ وویل: آیا په تاسو کې د اهل کتابو څخه څوک شــته؟ موږ وویل: نه یا رســول الله ﷺ نو د دروازې د بندیدلو امر یې وکړو او ویې ویل: لاسونه مو پورته کړئ او ووایئ: لا اله الا الله موږ لاســونه پورته کړل او لا اله الا الله مو وویل نو بیا رســول الله ﷺ پورتنۍ دعا وکړه او صحابوو ته یې د جنت زیری ورکړ.

**با: افرادي بیعت:**

افرادي بیعت ته هم یو حدیث ذکر کوو:

یعنې رسول الله ﷺ له حضرت علي رضی الله عنه څخه د لا اله الا الله ویلو بیعت واخیســت او طریقه یې داسې ور ته وښــودله چې ســترگې پټې کړه لومړی یې زه درې ځلې وایم او بیا یې ته ووایه نو همداسې یې وکړل.زموږ مشائخ هم له خپلو مریدانو څخه په دې توگه بیعت اخلي او له گناهونو څخه د نصوحا توبې پر ایســتلو، د توحید کلمې د ذکر، د ښېنې غوښتنې پر دعاگانو او... لارښوونې ورتــه کوي او بیا ترې د تل لپاره دا بیعت اخلي چې د الله تعالی له نافرمانۍ به ځان ساتي.

۴- د جهاد بیعت: هغه بیعت چې صحابه کرامو له رسول اللــه ص سره کاوه چې د ژوند تر آخرې ســلگۍ به یې ترڅنــگ ولاړ او د کفــارو او مشرکینو پــر وړاندې به جنگېږي.

د خلیفــه یا امیر ټاکلو لپاره بیعت په دوه ډوله راغلی دی

۱- ځانگړی بیعت: چې د مشرانو او د خلکو د استازو له خوا تر سره شي.

۲- عام بیعت: چــې ټول ملت په کې برخه واخلي او له خپل مشر سره یا په لاس یا هم بالواسطه بیعت کوي.

نو د امیر ټاکلو ټوله پروســه هغه مهال شفافه کېدای شي چې د هوښــیارو، علماؤ او د اهل الــرأی خلکو په هر اړخیزو مشورو سره یو څوک د هغه ټول اهلیت او وړتیا ته په کتو سره انتخاب او ټاکل شي.

نــو له همدې امله بیا دغــه ډول بیعت کې ژوند کول هم خوند لري هم له ثوابونو سره مل وي.

رســول الله ص فرمایي: (عن ابي هريرة رض قال رســول الله ص اذا كانت امراءكم خياركم و اغنياءكم ســمعاءكم و اموركم شورى بينكم فظهرالارض خير لكم من بطنها، رواه الترمذى) کله چې ستاســې واکمنان ستاســې له ښو خلکو وي ، ستاســې شتمن خلک سخیان وي او ستاسې کارونه د مشــورې پر اساس مخته ځي؛ نو د ځمکې مخ تاسو ته د ځمکې له گېډې نه بهتر دی.

**علامه ابن قدامه رح فرمایي:** د چا په حکومت او بیعت چې مســلمانان اتفاق وکړي؛ نو د هغه حکومت ثابت او له هغه سره کومک واجب دی.

کله چې محمد ص وفات شو نو د خپل ځایناستي په توگه یې کوم کس ونه ټاکــه او د امارت یا خلیفه ټاکنې چاره یې د صحابــه کرامو خپلمنځي انتخاب ته پرېښــوده؛ د دغه ســتر شخصیت تر وفات وروسته مسلمانان په ثقیفه بني ســاعده کې سره غونډ شــول، انصارو او مهاجرو په خپل منځ کې پراخې مشــورې وکــړې او بالاخره له څو تنــو پرته، ټولو په اتفــاق سره د ابوبکر صدیق رض پر خلافت سلا شول.

بخاري شریف وایي چــې (فبايعه الناس) خلکو ورسره بیعت وکړ او ابوبکر یې خپل مشر وټاکه

**د بیعت څرنگوالی:**

الموسوعة الفقهية په ۹جلد او ۲۷۸ص کې لیکي : هر یو بیعــت کوونکی باید هغه چا تــه په خطاب کې ووایي چــې د خلافت بیعت ورسره کېږي ((موږ له تاسره په دې شرط بیعت کوو چې عدل او انصاف به قائموې او د امامت په ټولو شرعي وجایبو به عمل کوې))

لاس په لاس کې کېښودل ضرور نه دي ، اگرکه بیعت د رسول الله او خلفاء راشدینو په وخت کې لاس په لاس کېده ، همدا راز د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه سره د بیعــت پر مهال حضرت عمر فاروق رضی الله عنه د مســلمانانو تر منځ په اختلاف ووېرېده ، ورته وویل : اې ابوبکــره لاس راکړه، هغه لاس ورکړ، ده بیعت ور سره وکړ، له هغه وروســته مهاجرینو بیعت وکړ، بیا انصارو بیعت وکړ.

دبیعت د ماتېدو سزا:

**ژباړه :** حضرت ابوهریره رضی الله عنه ویلي : رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : الله جل جلاله به د قیامت په ورځ له درېیو کســانو سره هېڅ خبرې ونه کــړي او نه به یې گناه وبښــي ، بلکــې د دوی لپاره ســخت عذاب تیار شوی ، یو له دوی څخه هغه انسان دی چې د دنیوي گټو ترلاسه کولو په غرض له امام سره بیعت وکړي، که هغه گټې ورته رسېدې ، نو په بیعت وفا کوي او که په نظر کې نیول شــوې گټې نه ورته رسېدې نو وفا نه کوي . رواه البخاری

همدا راز په یوه بــل حدیث کې د بیعت ماتول له شرک وروسته ستر غدر او لویه گناه بلل شوې ده.

**ژبــاړه :** د حضرت نافع له حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهم څخه روایت دی ، هغه وویل : ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم واورېدل هغه وفرمایل : د قیامت په ورځ به د غدر بیروغونه (لوحې) ودرول شي ، و بــه ویل شي دا د فلان غــدر دی ، په تحقیق له الله سره تر شرک وروســته له ټولــو، لوی غدر به د هغه چا وښــودل شي ، چې یوځــل د الله او د هغه رســول په لاره د چا سره بیعت وکړي ، بیا هغه بیعت بېرته مات کړي.

**اطاعت:**

اطاعت د حکومتونو، خوځښتونو او ټولنې لپاره د بریا رمز دی

مــوږ که تاریخي پاڼــې واړوو، یا تر ســترگو لاندې لنډ تېــر وخت ته کتنه وکړو، څرگنده به شي، چې د بریاوو یواځنی رمز چې ټولنې، بهیرونه، ډلې او خوځښتونه او آن حکومتونه یې له برکته د بریا تر پولو رســېدلي، هغه اطاعــت (منل) وه او هغه مهال لوی نظامونه نړېدلي کله چې د اطاعت ماده په کې له منځه تللې ده .

اسلامي نظامونه عموماً داســې دي چې ټینگ پوړي یې د مــشروع اطاعت او لوړ پوړي یې په ترحم، شــفقت او مشورو مخته ځي.

کله چې د نبــوي دور غزواتو ته کتنــه وشي او تر هغه وروسته د واکمنو مسلمانو مشرانو د بریاوو رموز وڅېړل شي، څرگندېږي،چې د نورو لاملونو ترڅنگ یې د بریا یو مهم عامل د اطاعت په زیور سنبالښت ؤ.

خو اطاعت لکه څنگه چې رسول الله ص ویلي چې: «انما الطاعة فی المعروف» یواځې په مشروع او روا (جائزو) چارو کې دی، که سر لښــکر یــا کوم بل مؤظف مشر د منکراتو د اقامې امر کاؤ، نو هغه مهال ترې سرغړونه هم مهم اصل بلل شوې ده.

دا چې په اســلام کې ړوند اطاعت نشته، له همدې امله اړینه ده چې مشر خپل حکمونه په روښــانه توگه خپل رعیت ته بیان او له اهمیت یې ښه واقف کړي ځکه چې له ړانده اطاعت څخه د رضایت او خبریدو اطاعت بهتر او افضل ده .

یــوه روایت کې راځي چې د رســول الله صلی الله علیه وســلم یوه صحابي خپلو تر لاس لاندې ملگرو ته اور بل کړ او له هغوی یې وغوښتل چې ځانونه ور وغورځوي ،خو عسکرو یې د دغه امر د منلو څخه ډډه وکړه ؛ کله چې رســول الله صلی الله علیه وســلم خبر شو، نو هغه د دې پوځیانو لخوا د خپل مشر بې اطاعتې وســتایله او زیاتــه یې کړه چې : «که دوی اور ته ننوتي وای، دوی به کله هم تــرې راوتلي نه وای. » [روی علی ابن ابی طالب بخاری رقم ٤٣٤٠ باب انماطاعة فی المعروف]

همدا راز اطاعت په هغو مواردو کې هم ناســم کار بلل شوی چې هلته د یوه مشر مسؤل امر د شریعت له حکم سره څرگند مخالف وي، بیا نو دلته هم لازمه ده تر څو د مسؤل د پیروي پر ځای، د شریعت د منصوصي احکامو لوری ونیول شي.

**د الله ج په قطعي اوامرو د صحابه کرامو تعمیل:**

کلــه چې شراب پــه پوره ډول حرام شــول اللــه تعالی وفرمایل:ژبــاړه (نــو آیا تاســو ځانونه لــه (شرابو) را گرځوی؟) [المائدة: ۹۱]

عمر رضي الله عنه چې دا آیت واورېده، ویې ویل: «بلې! موږ ځانونه له شراب څښــلو را وگرځول، موږ ځانونه له شراب څښــلو را وگرځول»، ټولو اصحابو د کور په کوڅو کې شراب تویې کړل، د شرابو لوښي یې مات کړل او نور یې ځانونه ځینې را وگرځول.



# د قلم ارزښت او د ليکوال مسئوليت

محمد قاسم عزام

قلم د علم، تمدن او فکر يوه بنسټيزه وسيله ده، چې د بشري پرمختګ لپاره لـه ټولو اغېزناک رول لري. د تاريخ له پيل راهيسې، قلم د علـم د ثبت، فکر د خپرولو او د ټولنو د لارښوونې له ټولو مؤثره وسيله پاتې شـوې. د همدې قلم برکـت و، چې بشريت د تيارو له ژورې کندې څخه د تمدن، معرفت او انساني ارزښـتونو لوړو پوړيو ته پورته شـو. کله چې الله تعالی خپل سـپېڅلی کلام نازل کړ، نو د "اقْرَأْ بِاسْـمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ" (العلق:۱) امر يې وکړ، چې دا د علم او قلم د ارزښـت څرګندونه کوي. حتی الله تعالی د "ن وَالْقَلَمِ وَمَا يَسْـطُرُونَ" (القلم:۱) په وينا قلم باندې قسـم کړی، چې دا يې مقام نور هـم لوړوي. دا ټول دلايل دا ښـيي، چې قلم يوازې د ليکلو وسيله نه ده، بلکې د علم، فکر او حقيقت د بيان سرچينه ده، چې د يوه امت برخليک بدلولی شي.

د بشري تاريخ له پيله قلم د تمدنونو، پوهې او عدالت د ټينګښـت لـه ټولو مهمه وسـيله پاتې شـوې او د پرمختګ هر پړاو د همدې وسـيلې له برکته ممکن شوی دی. که د نړۍ ستر تمدنونه وڅېړو، نو ښکاره به شي چې د هر پرمختللي دور تر شـا د پوهانو، علماوو او ليکوالانو فکـري هڅې پرتې دي. هغوی د قلم له لارې خپـل فکرونه، نظريات او تجربې نسـلونو ته لېـږدولي دي، چې له همدې امله د انسـانيت فکري، اخلاقي، او علمي وده ممکنه شوې ده.

د اسـلام زرين عصر، چې د علم، فکر او تمدن د ودې يو روښـانه مثال دی، د همدې قلـم او ليکوالۍ د نه ستړي کېدونکو هڅو پايله وه. هغه دور چې بغداد، قرطبه او دمشـق د علمي مرکزونو په توګه وځلېدل، د هغو علماوو، فقهـاوو او مؤرخينو د زحمتونو ثمره وه، چـې خپل ژوند يې د علم د خپـراوي، د کتابونو د تأليف او د حقايقو د سـپړلو لپاره وقف کړی و. دا د قلم ځواک و، چې اسـلامي تمـدن يې د نړۍ علمي مشرۍ ته ورسـاوه، او داسې پوهان يې وروزل، چې لا تر اوسـه يې د علومو، فلسفې او فکر څراغونه نه دي مړه شوي.

امـام غزالي رحمه الله د علم او قلم د ارزښـت په اړه وايي: "که تاسـې غواړئ چې يوه ټولنه برباده کړئ، نـو د هغوی د علم سرچينې تباه کـړئ او که غواړئ چې يوه ټولنه اباده کړئ، نو د هغوی فکرونه روښانه کـړئ." دا حقيقـت دی، ځکه چې کله هـم د قلم ځواک کمزوری شوی، هلته جهالت، ظلم او شاتګ حاکم شوی. د اسلامي تاريخ له ټولو ستر عالمان، لکه امام بخاري رحمه الله، امام شـافعي رحمه الله، امام ابوحنيفه رحمه الله او نور محدثين، د خپل قلم له لارې د امت لپاره د علم زېرمې پرېښې، چې تر ننه پورې د نړۍ ميليونونه مسـلمانان ورڅخه استفاده کوي. ابن خلدون رحمه الله، چې د تاريخ او ټولنپوهنې بنسټ ايښودونکی ګڼل کېږي، د قلم له لارې تاريخ ته نوې روح ورکړ. هغه د تمدنونو د زوال او پرمختګ فلسفه بيان کړه او دا يې څرګنده کړه، چې ټولنې څنګه وده کوي او بيا څنګه زوال ته ځي. د ده کتاب "المقدمة" د بشري تمدن د مطالعاتو يو بنسټيز اثر ګڼل کېږي، چې لا هم د پوهانو او څېړونکو له خوا مطالعه کېږي.

د اسـلامي تمدن سربېره، که د يونـان، فارس، هند او اروپـا تمدنونو ته وګورو، نو هـر ځای به د قلم رول څرګند ومومو. افلاطون، ارسـطو، سـقراط، او ابن سـينا ټول هغه لوی مفکرين وو، چې خپل افکار يې د قلم له لارې د تاريخ حافظې ته وسـپارل. که هغوی يوازې خبرې کـړې وای او خپل نظريات يې نه وای ثبت کړي، نو نـن به د نړۍ فکري وده دومره پراخه نه وای.

نـو دا څرګنده ده، چې قلم يوازې د ليکلو وسـيله نه ده، بلکې د تمدنونو د ودې او زوال، د علم د انتقال او د ټولنيزو بدلونونو له ټولو مهم وسيله ده. هغه ملتونه چې قلم ته ارزښت ورکوي، د علم مشري کوي او هغه ملتونه چې قلم ته شا کوي، د زوال کندې ته لوېږي.

همدا راز ليکوال د ټولنې فکري، اخلاقي او سـياسي لارښود دی او قلم يې د حق، اصلاح او عدالت وسيله ګڼل کېږي. تاريخ شـاهد دی، چې هره ټولنه د هغو ليکوالو له برکته بيداره شـوې، چې قلم يې د حقايقو د بيان، د ناپوهۍ د ختمولو او د عدالت د ټينګښـت لپاره کارولی دی. که قلم د صداقت، حکمت او عدل لپاره وکارول شي، نو د ټولنې د بيدارۍ سبب ګرځي، خلک له جهالت څخه پوهې ته لاره مومي او عدالت ته زمينـه برابروي، خو که د دروغو، فسـاد او فتنو خپرولو وسـيله وګرځي، نو نه يوازې د ملت فکري زوال تـه زمينه برابروي، بلکې د ټولنې بنسـټونه هم کمزوري کوي.

ليکـوال يوازې د الفاظـو جوړوونکی نه دی، بلکې هغه د ټولنې فکرونو ته شکل ورکوونکی هم دی. د تاريخ ستر مفکرين او مصلحين، چې د ټولنو د سمون او بيدارۍ لامل شوي، د خپل قلم له لارې يې خلکو ته پيغام رسولی. هغوی يوازې خبرې نه دي کړې، بلکې خپلو نظرياتـو ته يې تحريري بڼـه ورکړې، ترڅو نسـلونه ترې اسـتفاده وکړي. همدا لامل دی، چې د ملتونو فکري او اخلاقي پرمختګ د هغو ليکوالانو برکت دی، چې د علـم، حکمت او تقوا له مخې يې قلم چلولی.

د حضرت علي کـرم الله وجهه دا وينا د ليکوال لپاره لوی درس دی: "د انسـان شـخصيت د هغه د قلم تر څوکې پورې محـدود دی، که رښـتيا ليکي، عزتمن کېږي او کـه دروغ ليکي، شرمېدلی به وي." دا وينا موږ ته دا درس راکوي، چې قلم د ليکلو وسـيله هم ده او د ليکوال شخصيت او ارزښت هم ورسره تړلی دی. که يو ليکوال رښتينی، امانتدار او بااخلاقه وي، نو قلم به يې د انسانيت د خدمت وسيله وي، خو که يې قلم د شـخصي ګټو، نفرت او فتنو د خپرولو لپاره وکارول شي، نو نه يوازې خپل عزت له لاسه ورکوي، بلکې د ټولنې د اخلاقي زوال سبب هم ګرځي.

امام ابـن تيميه رحمه الله وايـي: "حقيقي عالِم هغه دی، چـې قلم يې د الله لپاره وي او هدف يې د خلکو اصلاح وي." دا وينا دا روښـانه کوي، چې ليکوال د معلوماتو انتقالولو تر څنګ د ټولنې د فکري، اخلاقي او روحاني ارزښتونو د ودې مسؤليت هم پر غاړه لري. يو رښـتينی ليکوال هغه دی، چې خپل قلم د خلکو د لارښـوونې، د خير خپرولو او د باطل له منځه وړلو لپاره وکاروي.

د تاريخ په اوږدو کې به داسې ډېر ليکوالان ومومي، چې د خپل قلم له لارې يې انقلابونه راوړي، ملتونه يې بيدار کـړي او د ظلم او جهالت خلاف يې د مبارزې اور بـل کړی دی. امام غزالي، ابن خلدون، شـاه ولي الله دهلوي، سـيد جمال الدين افغاني او علامه اقبال هغه شـخصيتونه دي، چې د خپل قلـم له لارې يې د مسـلمانانو فکري شـعور پورته کړ. هغوی د علم، حکمـت او تحقيق له لارې خلکو ته وښـوده، چې ژوند بايد يوازې د دنيا لپاره نه وي، بلکې بايد د دين، اخلاق او عدالت لپاره هم هڅې وشي.

نـو فلهذا ليکوال ته پـه کار ده، چې خپل قلم د خير لپاره وکاروي، د حقيقت بيان ته ژمن واوسي او د فتنو، دروغو او بې‌عدالتۍ پر وړاندې ودرېږي، ځکه چې د ليکـوال قلم يوازې د يو فرد وسـيله نه ده، بلکې د ټولنې د برخليک ټاکونکی ځواک هم کېدای شي.

همـدا راز د قلم د توري په پرتله ډېر قوي دی، ځکه چې توره يوازې د انسـان بـدن زخمي کوي، خو قلم د ذهنونـو، فکرونو او زړونو انقـلاب راولي. تاريخ شاهد دی، چې د توري واکمنۍ تل لنډمهاله وي، خو د قلم اثرات تر نسـلونو دوام کـوي. د نړۍ هر لوی تمدن د قلم له برکته اباد شـوی، او هر ملت چې د قلم له ارزښت بې‌خبره پاتې شـوی، هغه د جهالت، ظلم او شـاتګ ښکار شوی. دا قلم و، چې د اسلامي امت د راويښـولو لپاره يې ستر حرکتونه رااوپارول، د ظلم خلاف يې فکري انقلابونه رامنځته کړل او د ټولنې د سمون لپاره يې عملي لارې هوارې کړې.

د علامه اقبال فلسفه، د سيد قطب تحليلونه او د مولانا مودودي فکري مبارزه ټول د قلم برکتونه دي. علامه اقبـال د خپل قلم لـه لارې د ملت د فکـري بيدارۍ مشـعل بل کړ، د مسـلمانانو د خپلواکې تصور يې را ژونـدی کړ او هغوی تـه يې د ځـان پېژندنې پيغام ورکړ. سـيد قطب، چې د ظلم پـه زندانونو کې و، د خپل قلم له لارې د امت فکري شـعور ته نوی روح ورکړ او د اسـلام د حقيقي بيـدارۍ پيغام يې خلکو ته ورسـاوه. همدا راز، مولانا مودودي د خپل قلم له برکته د اسـلامي نظام مفاهيم واضح کړل او هغه ته يې د تطبيق عملي بڼه ورکړه. دا درې واړه شخصيتونه توره نه درلوده، نه يې ځواک درلود، خو د خپل قلم له لارې يې نسلونه متأثر کړل، د خلکو فکرونه يې بدل کړل او د ټولنو راتلونکې يې مشخص کړ.

د توري بريا لنډمهاله وي، خو د قلم بريا د نسـلونو په فکري جوړښـت اثر کوي. توره د يوې ساحې يا يوې سيمې حاکميت تر لاسـه کولی شي، خو قلم د زړونـو، ذهنونو او افکارو سـلطنت جوړولی شي. هغه پاچاهان چې د توري په زور يې خپل سلطنتونه جـوړ کـړي، تاريخ هغـوی هېر کـړي، خو هغه مفکريـن، علما او ليکوالان چې د قلم له لارې يې د خلکو زړونه فتح کړي، تل پاتې شوي دي. د اسلامي تمـدن زرين دور ته چې وکتل شي، وبه ګورو چې دا د هغـو علماوو، مفسرينـو، محدثينو او مفکرينو د فکرونو برکت و، چې خپل قلم يې د اسـلام د بقا او پرمختګ لپاره وکاراوه.

د ابـن قيم رحمـه الله دا خبره تل بايـد په ذهن کې وسـاتو: "د ظـالِم خلاف جګړه يوازې د وسـلو له لارې نه کېږي، بلکې د قلم له لارې يې ظلم ته ماتې ورکولی شئ." دا جمله موږ ته دا درس راکوي، چې د ظالمانو خلاف مبارزه يوازې د توري له لارې نه شي کاميابه کېدای، بلکې قلم هم د ظلم، استبداد او جهل خلاف يوه اغېزمنه وسـله ده. تاريخ ګواه دی، چې ډېر واکمنان د وسلو په زور پر خلکو حاکم شوي، خو د هغوی ظلمونو ته د پای ټکی د هغو مفکرينو، علماوو او ليکوالانو له خوا ايښـودل شـوی، چې د قلم له لارې يې د ملتونو فکرونه بدل کړي.

په تاريخ کې ډېر لوی پاچاهان او امپراتوران راغلي، چې خپل سـلطنتونه يې د زور له لارې ټينګ کړي، خو د هغوی واک پای ته رسـېدلی او د دوی نومونه اوس يـوازې د تاريخ په پاڼو کې يادېږي. برعکس، فکـري انقلابونه، چـې د قلم لـه لارې راوتلي، تل پاتې شـوي دي. امام غزالي، ابـن خلدون، ابن تيميه او نور سـتر مفکرين نه پاچاهـان وو، نه جنرالان، خو د خپـل قلم له لارې يې داسـې فکري نهضتونه رامنځته کړل، چې د نسلونو په افکارو يې ژور اغېز پرېښـود. هغوی د قلم لـه لارې د تمدنونو د ودې، د ظلم د له منځه وړلو او د اسلامي ارزښتونو د عامولو کار وکړ، چې د تاريخ په اوږدو کې يې اثرات ليدل کېږي.

# کار ساخت دوشبکه آب‌رسانی صحی در غزنی آغاز شد

وزارت احیاء و انکشاف دهات می گوید، کار ساخت دوشبکه آب‌رسانی صحی به ارزش بیش از ۱۳ میلیون افغانی در مربوطات ولایت غزنی آغاز شده است. به گفته وزارت احیاء و انکشاف دهات، این دو پروژه عام‌المنفعه در قریه‌جات «فیض آباد و اسکندر» ولسوالی ناوه ولایت غزنی ساخته خواهند شد. در خبرنامه در مورد منبع تمویل مالی این دو پروژه انکشافی به چیزی گفته نشده است. اعمار ذخایر آب به ظرفیت ۲۰ متر مکعب، نصب نزدیک به ۳۰۰ شیر دهن آب، منتاژ چندین تخته سولر و پایپ‌دوانی ساحات تحت پوشش از بخش های شامل این پروژه‌ها گفته شده است. با تکمیل کار ساخت این دو پروژه نزدیک به ۵۰۰ خانواده به آب آشامیدنی صحی دسترسی خواهند داشت. این در حالی است که دو روز پیش نیز یک شبکه آب‌رسانی به ارزش ۱۴۵ هزار دالر امریکایی در ولایت کندز به بهره‌برداری سپرده شد.



## د مېرمنو حقيقي ...

برخو کې د ښـځو پراخ حضور شته. ويل کېږي چې شـاوخوا لس زره مېرمنې پر سوداګريزو او تشبثي فعاليتونو بوختې دي. موږ ته هم پکار ده چې د اوازو او د غرب د ګوزارانو د دفع په موخه د ښځو برخه کې هغو برخو ته رونق ورکړو او تر نورو ورسوو چې تراوسه پرې څوک خبر نه دي.

## ګاونډيو ته ورل شوي ...

خو د هغوی ځای يې ونه نيو، اوس دې زموږ د تلف شـوو وسلو تاوان ورکړي». ښاغلي پښـتون زياته کړه چې امريکا د افغانسـتان پوځي بنسټونه ونړول، ميليونونه افغانان يې ووژل او زموږ پرمختللې وسلې يې له کاره وغورځولې. نوموړي وويل «اوس که د وسلو ادعا کوي، بايد د هغه دوه برابره تاوان هم ورکړي». د پخواني دفاع وزارت مرستيال ډګر جنرال افضل امان هم ټينګار وکړ، چې دا وسـلې د افغانسـتان د ملي حاکميت، ملي ګټو او د هېواد د سرحدونو سـاتنې لپاره ورکړل شوې وې، نه د کوم ځانګړي رژيم يا سياسي ډلې لپاره. نوموړي وويل، اسـلامي امارت تل دا دريځ سـاتلی چې افغانسـتان به د هېڅ تروريستي ډلې لپاره خوندي ځای نه وي او خپله خاوره به د هېڅ هېواد کارېدو ته پرې نه ږدي. هغه ټينګار وکړ چې دا وسـلې د افغانانو مال دی او د امريکا له وتلو وروسـته بـه هم د هېواد د خپلواکۍ، مـلي حاکميت او د خلکو د خونديتوب لپاره وکارول شي. د افغانستان پوځي تجهيزات، چې د پخواني حکومت د سقوط پر مهال ګاونډيو هېوادونو ته لېږل شـوي، د افغانانو ملي شتمني بلل کېږي. له همدې امله، افغان چارواکي او نظامي شـنونکي ټينګار کوي، چې افغانستان د خپلې خاورې او ملي ارزښتونو د دفاع حق لري او دا تجهيزات بايد د همدې هدف لپاره وکارول شي.

**نذير منيب**

## نشست بزرگ ولسوالان ...

و اسـتفاده مواد مخدر شـده همچنان بر تلاش‌های مشترک در بخش جلوگیری از رویدادهـای جرمی، قتل‌های مرموز، دزدی‌های گروهی و دیگر جرم‌ها که تاکنون جلوگیری شده، تاکید کرده است. در این نشست، مسوولان امنیتی و دیگر بخش‌های حکومت محلی بلخ نیز طرح‌ها، پیشنهادات و دست‌آوردهای‌شان را بیان کرده‌اند.

## وزارت معارف بازسازی ...

سرپل این پروژه‌ها را منظور کرده است.

قرار اسـت این مکاتب در مرکز و ولسـوالی‌های ولایت سرپل مورد بازسازی قرار گیرد.

وزارت معارف در مورد منبع تمویل بازسـازی مکاتب ولایت سرپل در خبرنامه چیزی نگفته است.

این در حالی است که وزارت معارف در سال‌جاری نیز به کمک بودجه داخلی و نهادهای همکار با این وزارت صدها مکتب را در ولایت‌های مختلف کشور مورد بازسازی قرار داده است.

Shariat
Daily

**Shariat**
**Published by**
Islamic Emirate of Afghanistan
Eng, Uzair Baryaly ، Director of Gov.dailies
0202526340
Chief Editor : Farooq Ghaljai/ 0778635852
Email: info@shariatdaily.com
WWW.shariatdaily.com ویب سایت:

**شریعت**
د دولتي ورځپاڼو رئیس:
انجنیر عُزیر بریالی / ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
مسئول مدیر: فاروق غلجی/ ۰۷۷۸۶۳۵۸۵۲
مسئول سکرتر: خالد افغان/ ۰۷۷۳۰۶۲۸۳۲
د شریعت برېښنا لیک: info@shariatdaily.com
پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ، کابل ـ افغانستان
**شماره توزیع و شکایات:** ۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹ / ۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶/ ۰۷۳۱۶۰۶۰۷۳

Monday 10 March 2025 / Established: 1995 / 2nd Season / Vol: 703

# بازپس گیری ۱۵ عراده موتر دزدی شده در نیمروز

مقام‌های محلی ولایت نیمروز می‌گوید، ۱۵ عراده موتر نوع لوکسل و فلدر دزدی‌شده در ولایت‌های هلمند، فراه و نیمروز از نزد دزدان بازپس گرفته شده است.به گفته آقای خالد، این تعداد موترها در نتیجه تلاش‌های خسته‌گی‌ناپذیر نهادهای کشفی و امنیتی ولایت نیمروز از نزد یک گروه دزدان حرفوی کشف و بدست آمده است.والی نیمروز در این کنفرانس خبری افزوده که همراه با این موترها یک گروهی از دزدان حرفوی نیز بازداشت شده که به‌زودی به نهادهای عدلی و قضایی سپرده خواهد شد.او به باشندگان ولایت نیمروز اطمینان داد که نیروهای امنیتی حافظ سر ، جان مال آنان بوده و از هیچ تلاشی در این راستا دریغ نخواهند کرد.والی نیمروز تاکید کرد که موترهای بدست‌آمده پس از فیصله محکمه به صاحبان اصلی‌اش تسلیم داده خواهد شد.

## نړۍ خبر

## غزه کې بنايي د اوربند دويم پړاو پيل شي

د حماس جهادي غورځنګ ويلي، چې په غزې کې د اوربند د دويم پړاو خبرو پيل شونتيا شته.دغه څرګندونې داسې مهال شوې، چې د حماس جهادي غورځنګ استازو د مصر په مرکز قاهرې کې د منځګړو هېوادونو له استازو سره کتلي دي.ياده دې وي، چې د حماس جهادي غوځنګ له منځګړو هېوادونو غوښتي، چې د اسراييلو صهيونېست رژيم دې د اوربند د لومړي پړاو تولې کړې ژمنې عملي کړي.

## مسکو پر کيف درانه بريدونه کړي

روسيې يو ځل بيا د اوکراين درې سيمې (دونيڅک، خارکيف او دوبروپيليا) تېره شپه تر درنو بريدونو لاندې راوستې دي.اوکراينې چارواکي وايي، چې د روسيې ځواکونو په دې بريدونو کې لږ تر لږه ۲۰ کسان وژل شوي دي.دا بريدونه په داسې مهال کېږي، چې ټاکل شوې په نږدې راتلونکې کې د دې جګړې د پای ته رسولو لپاره په سعودي عربستان کې غونډه پيل شي.

## رئیس جمهور کوریای جنوبی از زندان آزاد شد

بربنیاد گزارش‌ها، یون سوک یول، رئیس جمهوری کوریای جنوبی از زندان آزاد شده است.بربنیاد گزارش، څارنوالان تصمیم گرفتند که به تصمیم محکمه مبنی‌بر لغو حکم بازداشت رییس جمهور استیضاح‌شده این کشور اعتراض نکنند و او به این ترتیب از زندان آزاد شده است.یون سوک یول، رئیس جمهور کوریای جنوبی پس از سپری کردن ۵۲ روز در زندان آزاد شده است.هرچند او در حال حاضر از زندان رها شده اما قرار است به اتهام اعلام حکومت نظامی ناموفق محاکمه شود.یون سوک یول حدود ۵۲ روز پیش و پس از مقاومت‌های شدید توسط هزاران نیروی پولیس بازداشت و به زندان منتقل شد.

## بغلان کې وسلې او مهمات نيول شوي

د بغلان ولايت د امنيه قومندانۍ د تروريزم په وړاندې د مبارزې مديريت مسئولين وايي چې د دغه ولايت په بېلابېلو برخو کې د ياد مديريت منسوبينو ګڼ شمېر وسلې او مهمات نيولي دي.د ياد ولايت د امنيه قومندانۍ د تروريزم پر وړاندې د مبارزې مدير ويلي چې د دغه ولايت د تروريزم پر وړاندې د مبارزې مديريت منسوبينو د ياد ولايت په بېلابېلو سيمو کې د عملياتو پر مهال ګڼ شمېر وسلې او مهمات نيولي، چې په کې دوه هاوانونه، يو ميل پيکا، دوه ميله کلاشينکوفونه، دوه ميله ام شپاړس، ۲۷ کړۍ تومانچې، ۳ فيره د هاوان مرمۍ، ۵۹ فيره د ډي سي مرمۍ، ۱ فير د راکيټ مرمۍ، ۸۰ فيره د دهشکې مرمۍ، ۶ فيره د ۸۲ ملي متري توپ مرمۍ او درې چاودېدونکې بوشکې شاملې دي.

د نوموړي په وينا چې دغه وسلې او مهمات د تروريزم مديريت په هڅو د دې ولايت له بېلابېلو ولسواليو او برخو څخه راټول شوي، چې ورسره به نور هم په دې ولايت کې امنيت ډاډمن شي.

## تهران د عامې روغتيا برخه کې د همکارۍ ژمنه کړې

د عامې روغتيا سرپرست وزير نور جلال جلالي د افغانستان لپاره د ايران له سفير علي رضا بېکدلي سره په کتنه کې د روغتيايي کارکوونکو په ظرفيت لوړولو، د باکيفيته روغتيايي خدمتونو په وړاندې کولو او دوه اړخيزو همکاريو خبرې کړې دي. عامې روغتيا وزارت وايي، چې دې کتنه کې جلالي د روغتيا پالانو د ظرفيت لوړونې، د باکيفيته درملو او عصري طبي تجهيزاتو د برابرولو برخه کې د ايران د همکارۍ غوښتنه کړې. ياد وزارت زياتوي؛ دې کتنه کې بېکدلي له افغانستان سره د ايران د همکارۍ ډاډ ورکړی او ژمنه يې کړې چې نږدې راتلونکې کې به کابل او باميانو کې د جوړېدونکو روغتونونو پاتې چارې پيل کړي.

## ننګرهار کې لسګونو تنو ته کار موندنه شوې

د ننګرهار د کليو بيا رغونې او پراختيا رياست مسئولين وايي، چې د ياد ولايت په بټې کوټ ولسوالۍ کې لسګونه کسانو ته د کار زمينه برابره شوې ده. د ياد رياست رسنيز دفتر ويلي چې د دې رياست تر چتر لاندې د خوړو نړيوال پروګرام په مالي ملاتړ د بټې کوټ ولسوالۍ بېلا بېلو سيمو کې ۱۶۴ کسانو ته د کار زمينه برابره شوه. په ورته وخت کې د ياد رياست رييس مولوي قسمت الله مبارز ويلي، دغه کسان هره ورځ د يادې ولسوالۍ په بېلابېلو سيمو کې د کانالونو د پاکولو، د سړکونو په بيا رغولو او د نويو سړکونو په جوړولو بوخت دي.

## وزارت معارف بازسازی ۶۴ مکتب در سرپل را منظور کرد

وزارت معارف از منظوری بازسازی ۶۴ مکتب به ارزش ۵۱۲ هزار دالر امریکایی در ولایت سرپل، خبر می‌دهد.
بربنیاد خبرنامه، مولوی حبیب‌الله آغاز، سرپرست وزارت معارف در دیدار با مولوی محمد رحمانی، رییس معارف ولایت **ص۳**

## فراغت ۲۶۰ منسوب پولیس از مرکز تعلیمی و تربیوی ولایت پروان

مراسم فراغت ۲۶۳ تن از منسوبین پولیس از مرکز تعلیمی و تربیوی ولایت پروان با حضور قوماندان امنیه ولایت برگزار شد.
مقام‌های مرکز تعلیمی و تربیوی پولیس در ولایت می‌گویند، این دهمین دور فراغت منسوبین پولیس از این مرکز است که فارغ شده‌ها، آموزش‌های مسلکی، عقیدتی، تکتیکی و فزیکی را فراگرفته‌اند.به گفته آنان، منسوبین فارغ‌شده با تطبیق اندوخته‌های‌شان در صحنه عمل می‌توانند در تامین امن‌ونظم در جامعه موثر واقع شوند.بربنیاد معلومات مقام‌های مرکز یادشده پس از حاکمیت امارت اسلامی الی اکنون بیش از ۷ هزار منسوب پولیس پس از آموزش از این مرکز فارغ شده‌اند.